

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

# لومړی ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ . ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لومړی

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af






# د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنگه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د گران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراگانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږگوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنگه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توگه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې گران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او گټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانگه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه گټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو گډونوالو په توگه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وگړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي

# فهرست





# الله جل جلاله

**مور د الله جل جلاله بندګان یو.**

**الله جل جلاله د ټولو مخلوقاتو پیداکوونکی دی.**

**یوازې الله جل جلاله د عبادت وړ دی.**





## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ غږ ولولي.



## ارزونه

لاندې خالي ځایونه په یادو بشپړ کړئ:

۱_ موږ د.....................بندګان یو.

۲_ الله ﷻ د ټولو مخلوقاتو ............ دی.

۳_ الله ﷻ د عبادت.............دی.



دویم لوست

# زموږ پیغمبر

حضرت محمد ﷺ زموږ پیغمبر دی.

حضرت محمد ﷺ د الله جل جلاله وروستنی پیغمبر دی.

موږ د حضرت محمد ﷺ پیروان یو.





## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ غږ سره ولولي او يو له بل څخه دې پوښتنې وکړي.



## ارزونه

لاندې نيمګړې جملې په يادو بشپړې کړئ:

۱ _ حضرت........................ زموږ پيغمبر دی.

۲ _ موږ د حضرت محمد ﷺ.................. يو.

۳ _ حضرت محمد ﷺ د الله جل جلاله.......... پيغمبر دی.

# طیبه کلمه

## لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

- لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

**معنا**: د بندهګۍ وړ یوازې الله جل جلاله دی.

- مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللّٰهِ.

**معنا**: محمد صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله پیغمبر دی.



## فعالیت

زده کوونکي دې طیبه کلمه ولولي او یو له بل څخه دې وپوښتي.



## ارزونه

۱- طیبه کلمه ولولئ.

۲- «لَا اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ» معنا کړئ.

۳- د «مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ» معنا ووایئ.

# د شهادت کلمه

اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّداً رَّسُولُ اللّٰهِ

- اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ.

**معنا**: ګواهي ورکوم چې د بندهګۍ وړ یوازې اللهﷻ دی.

- وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّداً رَّسُوْلُ اللّٰهِ

**معنا**: او ګواهي ورکوم چې محمد ﷺ د اللهﷻ پیغمبر دی.





## فعالیت

زده کوونکي دې په ښوونکي پسې د شهادت کلمه تکرار کړي.



## ارزونه

۱_ د شهادت کلمه ولولئ.

۲_ «اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ» معنا کړئ.

۳_ «وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّداً رَّسُوْلُ اللّٰهِ» معنا کړئ.

۴- د شهادت کلمه له یاده ووایئ.

# قرآن کریم



قرآن کریم د الله جل جلاله کلام دی.

قرآن کریم پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نازل شوی دی.

موږ په قرآن کریم باندې ایمان لرو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ غږ ولولي  او د لوست په اړوند دې له یو بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ـ قرآن کریم د چا کلام دی ؟

۲ـ  قرآن کریم پر چا نازل شوی دی ؟

# اسلام

زموږ دین اسلام دی.

اسلام پنځه بناوې لري:

۱ - طیبه کلمه

۲ - لمونځ

۳ - روژه

۴ - زکات

۵ - حج

موږ له خپل دین سره مینه لرو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ غږ ولولي او يو له بل څخه دې د اسلام د پنځو بناوو په هکله پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱ـ اسلام څو بناوې لري؟

۲ـ د اسلام د پنځو بناوو نومونه واخلئ.

اووم لوست

# کعبه شریفه



- کعبه شریفه زموږ **قبله** ده.

- کعبه شریفه په مکه مکرمه کې ده.

- موږ د **کعبې شریفې** لور ته لمونځ کوو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د کعبې شریفې په هکله یو له بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړئ:

۱_ کعبه شریفه زموږ........................ ده.

۲_ کعبه شریفه په ...................... کې ده.

۳_ موږ د................. لور ته لمونځ کوو.

اتم لوست

# لمانځه لپاره پاکوالی



د لمانځه د اداء لپاره باید:

- زموږ ځان **پاک** وي.
- زموږ کالي **پاک** وي.
- د لمانځه **ځای پاک** وي.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لمانځه د پاکوالي په اړه یو له بل څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړئ:

۱ - زموږ ځان.................... وي.

۲_ زموږ کالي.................... وي.

۳_ د لمانځه............ وي.

نهم لوست

# اودس

## د اوداسه فرضونه څلور دي:




۱. د مخ مینځل.




۲. د لاسونو مینځل له څنګلو سره.




۳. د سر مسح کول.
(څلورمه برخه)




۴. د پښو مینځل له ښنګرو سره.

## فعالیت

 څو زده کوونکي دې اودس په ټولګي کې تمثیل کړي.

## ارزونه

۱_ د اوداسه فرضونه څو دي؟

۲_ د اوداسه د فرضونو نومونه واخلئ.

لسم لوست

# د لمانځه وختونه

لمونځ د **اسلام** دويمه بنا ده.

موږ **پنځه** وخته لمونځ کوو:

1. سهار
2. ماسپښين
3. مازديگر
4. ماښام
5. ماخستن



## فعالیت

زده کوونکــي دې د پنځه وختــه لمونځونو نومونه یو له بــل څخــه وپوښــتي.



## ارزونه

لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړئ:

۱ _ لمونځ د.............. دویمه بنا ده.

۲ _ مور...................... وخته لمونځ کوو.

# لمونځ

## تکبیر او ثنا

**اَللّٰهُ اَکبَرْ**

**سُـبْحَانَکَ اللّٰهُـمَّ وَبِحَمْـدِکَ وَتَبَارَکَ اسْـمُکَ، وَتَعالٰی جَدُّکَ وَلاَ اِلٰهَ غَیْرُکَ.**

**د کلمو تکرار:**

- سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ - وَبِحَمْدِکَ
- وَتَبَارَکَ اسْمُکَ - وَتَعالٰی جَدُّکَ
- وَلاَ اِلٰهَ غَیْرُکَ










## فعالیت

زده کوونکي دې تحریمه تکبیر او ثنا په لوړ غږ ولولي او یو له بل څخه دې پوښتنه وکړي.



## ارزونه

۱ . «سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ» ولولئ.

۲ . «سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ» له یاده ووایئ.

۳ . بشپړ یې کړئ:

سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ..........

# د فاتحې سورت (۱)

اَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطَانِ الرَّجِیْمِ

بِسمِ اللّٰهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِیْمِ

الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ ﴿۱﴾ الرَّحْمٰــنِ الرَّحِیْمِ ﴿۲﴾ مٰــلِکِ یَوْمِ الدِّیْنِ ﴿۳﴾







## فعالیت

زده کوونکي دې لمونځ عملي تمثیل کړي.

# د فاتحې سورت (۲)

إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴿۴﴾ اهْدِنَا الصِّرَاطَ المُسْتَقِيْمَ ﴿۵﴾ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنعَمْتَ عَلَيْهِمْ غيرِ المَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلاَ الضَّالِّيْنَ ﴿۶﴾







## فعالیت

زده کوونکي دې د فاتحې سورت په لوړ غږ  ووایي.



## ارزونه

۱ - «اَعُوذُ بِاللّٰهِ» له یاده ووایئ.

۲ - «بِسمِ اللّٰهِ» ووایئ.

۳- د فاتحې سورت ووایئ.

# قرائت

## د اخلاص سورت

قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَـــدٌ ﴿۱﴾ اَللَّهُ الصَّمَدُ ﴿۲﴾ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ ﴿۳﴾ وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ ﴿۴﴾







## فعالیت

زده کوونکي دې د اخلاص سورت په لوړ غږ په تکرار سره ولولي.



## ارزونه

۱ - د لوست متن په لوړ غږ سره ولولئ.

۲ - د اخلاص سورت له یاده ووایئ.

پنځلسم لوست

# د رکوع تسبیحات

- سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ
- سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ
- سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ





## فعالیت

زده کوونکي دې د رکوع تسبیحات درې ځلې تکرار کړي.



## ارزونه

۱. د رکوع تسبیحات ولولئ.

۲. تکمیل یې کړئ: سُبْحَانَ..........

۳. رکوع په عملي بڼه ترسره کړئ.

# تسمیع او تحمید

له رکوع څخه د پورته کېدو په وخت کې وايو:

سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ

رَبَّنَا وَلَکَ الْحَمْدُ





## فعالیت

زده کوونکي دې تسمیع او تحمید په لوړ غږ ولولي.

## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱- سَمِعَ اللّهُ..........

۲- ...... وَلَکَ الْحَمْدُ

اوولسم لوست

# د سجدې تسبيحات

- سُبْحَانَ رَبِّيَ الاَعْلٰى
- سُبْحَانَ رَبِّيَ الاَعْلٰى
- سُبْحَانَ رَبِّيَ الاَعْلٰى







## فعالیت

زده کوونکي دې د سجدې تسبیحات په لوړ غږ ولولي.



## ارزونه

بشپړ يې کړئ:

۱ - سُبْحَانَ................

۲ - ..... رَبِّيَ..............

۳- ..............الاَعْلٰى.

# التحيات (۱)

**التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ....**

**د کلماتو تکرار:**

- **التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ**
- **وَالصَّلَوَاتُ**
- **وَالطَّيِّبَاتُ**







## فعالیت

زده کوونکي دې د التحیات لومړۍ برخه په ډله ییزه توګه تکرار کړي.



## ارزونه

۱ - د التحیات لومړۍ برخه ولولئ.

۲ - د التحیات لومړۍ برخه له یاده ووایئ.

# التحيات (۲)

## السَّلامُ عَلَیْکَ اَیُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَکَاتُهُ......

## د کلماتو تکرار:

- السَّلامُ عَلَیْکَ
- اَیُّهَاالنَّبِيُّ
- وَرَحْمَةُاللهِ وَبَرَکَاتُهُ







## فعالیت

زده کوونکي دې د التحیات دویمه برخه په ډله ییزه توګه تکرار کړي.



## ارزونه

د التحیات دویمه برخه له یاده ووایئ.

# التحیات (۳)

**السَّلامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِیْنَ....**

**د کلمو تکرار:**

**السَّلامُ عَلَیْنَا**

**وَعَلٰی عِبَادِ اللّٰهِ**

**الصَّالِحِیْنَ**





## فعالیت

زده کوونکي دې د التحیات دریمه برخه په لوړ غږ ولولي.

## ارزونه

د التحیات دریمه برخه له یاده ووایئ.

# التحیات (۴)

**اَشْهَدُ اَن لاَّ اِلٰهَ الاَّ اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.**

**د کلمو تکرار:**

- **اَشْهَدُ اَنْ** - **لاَّ اِلٰهَ الاَّ اللّٰهُ**
- **وَاَشْهَدُ اَنَّ** - **مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَ رَسُولُهُ**







## فعالیت

زده کوونکي دې د التحیات څلورمه برخه په لوړ غږ ولولي او له یو بل څخه دې پوښتنې وکړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱- اَشْهَدُ اَنْ.......................... وَرَسُولُهُ.

# درود شریف (۱)

**اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ.**

**د جملو تکرار:**

**۱ - اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ**

**۲ - كَمَاصَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ**

**۳ - وَعَلٰى آلِ اِبْرَاهِيْمَ**

**۴ - اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ**







## فعالیت

زده کوونکي دې درود شریف په ډله ییزه توګه تکرار کړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱ - کَمَاصَلَّیْتَ.................................حَمِیْدٌ مَجِیْدٌ.

۲ - درودشریف ولولئ.

۳ - درود شریف له یاده ووایئ.

# درود شریف (۲)

**اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَّعَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِیْمَ وَعَلٰی آلِ اِبْرَاهِیْمَ اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ.**

**د جملو تکرار :**

**۱ - اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلَی مُحَمَّدٍ**

**۲ - وَعَلی آلِ مُحَمَّدٍ**

**۳ - کَمَابَارَکْتَ عَلی اِبْرَاهِیْمَ**

**۴ - وَعلی آلِ اِبْرَاهِیْمَ**

**۵ - اِنَّکَ حَمِیْدٌ مَّجِیْدٌ**



## فعالیت

زده کوونکي دې درود شریف په لوړ غږ ولولي او یو له بل څخه دې پوښتنې وکړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱- اَللّٰهُمَّ بَارِكْ.................................... آلِ مُحَمَّدٍ

۲- كَمَابَارَكْتَ........................................ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَجِيْدٌ

۳- درود شریف ولولئ.

۴- درود شریف له یاده ووایئ.

## څلورويشتم لوست

# دعا او سلام

**دعا:**

**اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ.**

**سلام:**

**اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ**

**اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ**

**د جملو تکرار:**

**اَللّٰهُمّ رَبَّنَا**

- **آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً**
- **وَّفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ**







## فعالیت

زده کوونکي دې په خپلو منځو کې دعا ولولي او ښوونکی دې د دوی تېروتنې اصلاح کړي.



## ارزونه

۱ - «اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا» ولولئ.

۲ - «اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا» له یاده ووایئ.

# د مور او پلار درناوی

موږ له خپل مور او پلار سره مینه لرو.

د دوی نصیحت ته غوږ نیسو.

د دوی په نصیحت عمل کوو.

له دوی سره تل په ادب او درناوي چلن کوو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن ولولي او یو له بل څخه دې پوښتنې وکړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱- موږ له خپل مور او پلار سره..............

۲- .................................. غوږ نیسو.

۳- د دوی په................ عمل کوو.

# د ښوونکي درناوی

**مور د خپل ښوونکي خبرو ته غوږ نیسو.**

**مور له خپل ښوونکي سره مینه لرو.**

**مور د خپل ښوونکي عزت کوو.**

**له اجازې پرته یې له ټولګي څخه نه وځو.**



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست متن په ډله ییزه توګه په لوړ غږ ووایي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱- موږ د.......................... غوږ نیسو.

۲- موږ له خپل........... سره مینه لرو.

۳- له اجازې پرته یې.................. نه وڅو.

۴- موږ د خپل ښوونکي.................. کوو.

# رښتیا ویل

مسلمان رښتینی وي.

له رښتیني شخص سره خلک مینه لري.

موږ همیشه رښتیا وایو.

دروغ ویل گناه ده.



## فعالیت

زده کوونکي دې د رښتیا ویلو په هکله یو له بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱ - مسلمان ................ وي

۲ - مور همیشه رښتیا......................

۳ - دروغ ویل.......................ده.

۴ - له ................ شخص سره خلک مینه لري.

# امانتداري

امانتداري د مسلمان صفت دی.

مورږ د امانت ساتنه کوو.

د امانت خیانتول ګناه ده.

د ښوونځي کتابونه له مورږ سره امانت دي.



## فعالیت

هر زده کووونکی دې د ښوونکي په مرسته د امانتدارۍ یوه یوه بېلگه ووايي.



## ارزونه

۱ - امانت د چا صفت دی؟

۲ - آیا تاسو د امانت ساتنه کوئ؟

# پاكوالی

زموږ پيغمبر ﷺ فرمايلي دي:

«پاكوالی د ايمان برخه ده».

موږ خپل ځان او كالي پاک ساتو.

موږ خپل جومات پاک ساتو.

موږ خپل كور او كوڅه پاكه ساتو.

پاكوالی زموږ روغتيا ته ګټه رسوي.









## فعالیت

زده کوونکي دې د کور، ښوونځي او خپل هستوګنځي د پاک ساتلو په هکله، یو له بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱- مور خپل ځان او خپل ..................... ساتو.

۲ – مور خپل جومات، کور او کوڅه.............

۳- مور.................. پاکه..........................

# د ډوډۍ خوړلو ادبونه

د ډوډۍ له خوړلو څخه مخکې **خپل لاسونه مینځو**.

د خوړلو په پیل کې **«بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ»**

وایو.

خواړه له خپلې خوا څخه خورو.

په ښي لاس یې خورو.

له ډوډۍ خوړلو څخه وروسته **«اَلْحَمْدُلِلّٰهِ»** وایو.



## فعالیت

زده کوونکــي دې د ډوډۍ خوړلــو د ادبونــو په هکله یو له بل ســره خبرې وکړي.



## ارزونه

بشپړ يې کړئ:

۱ - د ډوډۍ خوړلو ادبونه کوم دي؟

۲ - د ډوډۍ له خوړلو څخه مخکې................................

۳ - د خوړلو په پیل کې«........................................» وایو.

۴ - له ډوډۍ خوړلو څخه وروسته ........................ وایو.

# د اوبو څښلو ادبونه



د اوبو څښل په «بِسم اللّٰه» پیلوو.

په ښي لاس يې څښو.

اوبه په درېو دمو څښو.

اوبه په ناسته څښو.

وروسته له څښلو څخه «الحمد للّٰه» وايو.



## فعالیت

**زده کوونکي دې د لوست متن په لوړ غږ په ډله ییزه توگه ولولي او د لوست په هکله دې یو له بل څخه پوښتنې وکړي.**



## ارزونه

**بشپړ یې کړئ:**

**۱ - اوبه په................. دمو سره څښو.**

**۲ - اوبه په ناستې سره......................**

**۳ - په.................. لاس یې څښو.**

# د سلام ادبونه



سلام اچول سنت دي.

د سلام ځواب ورکول واجب دي.

سلام اچول ډېر ثواب لري.

د سلام الفاظ او ځواب دادي:

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاتهُ.

وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاتهُ.



## فعالیت

زده کوونکي دې له خپلو ټولګیوالو سره مسنونه سلام په عملي توګه تمرین کړي.



## ارزونه

بشپړ یې کړئ:

۱ - سلام اچول.......................... دي.

۲ - د سلام ځواب ورکول.......................... دي.

۳ - د سلام الفاظ او ځواب یې څوک ویلای شي؟

# د لارې ادبونه

د لارې په ښي لوري ځو.

د تللو پر وخت احتیاط کوو.

په لاره کې څوک نه ځوروو.

د تللو په وخت کې پر نورو سلام اچوو.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لارې د ادبونو په هکله یو له بل سره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱- د لارې ادبونه ووایئ.

۲- د لارې کوم خواته باید لاړ شو؟